# د باران انځور

# شعري ټولګه

## صديق الله بدر

# د زړه خبرې

چې راتـه کله کړې په خوله خبرې
ما تــه معــلومې شي د زړه خبرې
وړوکــی نه یم چې به هیر کړمه تا
هېـــریـــدل تــل وي د واړه خبرې
وږی دا ستا د مینې موړ به نه شي
مینــه کــې نـه کـړم د ماړه خبرې
وایم چې تل وای خو په خوا راسره
چـــې مـــو کولای د هر څه خبرې

چې مئیـن زړه مې "بدره " نه ژړوي
مـــه کــوه بیـا د بیــلتانه خبرې
۱/۱۰/۱۳۶۶

# پټ وختونه

د غم په دنیاګکی کې نن غمونه راته خاندي
د یار په اننګو کې سره لالونه راته خاندي
دا څنګه زمانه شوه چې مې حال ویلای نه شم
زما د مینې کورکې پټ وختونه را ته خاندي
د مینې دنیاګکی کې اوسیدل راته ګران شوي
د ګرانې په بڼو کې جوړ مرګونه راته خاندي
ژړا مې چې په سترګو نن راتللې هسې نه شي
دیار د سترګو منځ کې څه رازونه راته خاندي

توکل په خدای ورځمه د زړه حال اوس ورته وایم
د ښکلي یار په شونډو کې ستونه را ته خاندي
۱۳۶۲/۲۵/۱۰

# د وخت امتحان

ابادي مـــــې د وطـــــن زړه کې ارمان دی
چـــــې اباد کړمــــه وطن دا مې پیمان دی
د وطـــــن د مـــور اواز دی هـــــر بچي ته
چې راغلــــــی نن د وخت لوی امتحان دی
په ورورۍ کې د ژوندون خوشالۍ نغښتې
تربګنــــــــۍ کې ژوند په مثل د زندان دی
د وطـــــــــن پر ګنـــــــو واړه سره یو شئ
ځانځانــــــۍ کې د هر چا نغښتی تاوان دی
خپه زړونه بــه خوشال شي که خدای وکړي
په زحمـــــــــت پسې راحت د هر انسان دی
نـــــوک او ورۍ کله بیلیـــږي لا په ژوند کې
نـــوک او ورۍ په شان دا لوی ټبر افغان دی
۱۳۶۲/۱۰/۳۰

# آزادي

پرون وسوم
نن هم سوځم
زما برخه سوځېده دي
ازادي ازادي وايم
خو لاسونه مې په خوله دي
۱۳۶۶/۱۱/۱

# د وصل ترانې

لاره د ژوند زما رڼا شوله
راسره ګرانه چې پخلا شوله
اوس به د وصل ترانې وايمه
شپه د هجران لاړه سبا شوله
ياره راځه زما او ستا مينه کې
دنيا خو اوس زما او ستا شوله
جنون د مينې ته مې مه وايه څه
راته هر خوا ليلا ليلا شوله

"بدره" پروا د غماز مه کوه ته
د غماز خونه نن تالا شوله
۵/۱۱/۱۳۶۶

# د عشق تقوا

ګرانـــې چې تا بیا په راتلو کې وینم
زړه لـــه خوښۍ نه په ټوپو کې وینم
دا دی دا ستـــا د خوږې مینې اثـر
چــې کـراري خپــلو دردو کې وینم
دا چــــې سپـــرلو نه بې پروا یمه زه
سپرلــی دا سـتا په اننګو کې وینم
ما تـه شـي هیڅ د ساقي نوم و نښان
نشې چې ستا سترګو پیالو کې وینم

د عشـــــق تقوا سـره د "بدر" سر شو
ځکه یې تل د عشـق سجدو کې وینم
۱۵/۱۱/۱۳۶۲

# د لېونتوب خبر

ولـــــې نن لـه مانـه نا اشنـا شولې
وا يـــه چې په لمسه ته د چا شولې
دا بــــه وي خبـر د ليـونتوب زما
هيلــې مـې د ميـنې چې تالا شولې
ما تـــه هر نظـر كـې ښكاريدلې ته
څه لـه مـې له سترګو نه پناه شولې
ما ويل چـــــې ته به با وفا يې تل
لاړې پـــه وعدو كې بې وفا شولې

ته خو نن سپوږمۍ د زلمي "بدر" يې
خير كـــه يو شيبـه را نه جدا شولې
۱۳۶۲/۱۲/۱۰

# تللې یارانې

ډکې چې خندا نه خولې د ګلو دي
ځکه بیا ناري پرې د بلبلو دي
خونې د غمازو هسې ورانې شوې
شپې چې د وصال په رسیدلو دي
نن چې مې زړګی هسې خوشاله دی
تللې یارانې په بیا راتللو دي
دا سترګې تیارې زما ړنا شولې
شپې د بیلتانه چې په وتلو دي

شیخ چې د ښکلا په ښار د ېره شو وېل
ښکلې چې څه دي، د ښکلولو دي
۱۳۶۷/۱/۳۰

# خواري سترګې

دا خو د ناکامې مينـــــې چارې دي
اوښکې مې په سترګو لارې لارې دي
مينـــه چې زما ورتـــــه درنه نه شوه
دلته د خوارانو برخـــــې خوارې دي
زړه مې چې ګوګل کې دی پرهر ترېنه
څو مره د اشنا سترګـــــې مکارې دي
رنګ چې ترې ګلان د مينې اخلي تل
دا د ميـــن زړه د وينـــــو دارې دي

اخلـــې که خمار ترينه د مــــــينې تل
"بـدره " د جانان سترګې خمــــارې دي
۱۳۶۷/۲/۲

# ناسوري پرهر

تــــــورتــم رڼـا ، رڼـا تـــورتم وګڼه
غــــم خوشالي، خوشالي غم وګڼه
چـــې يـې نظر هم په تا نه خوږيږي
زړګيــــــه دا د يــــار ستـــم وګڼه
چې ناسوري پرهر رغيږي پرې ستا
اوس يــې يــادونــه هم ملهم وګڼه
کـــله د ګـــل پر مخ شبنم چې وينې
تـــه يـــې زمـــا د ستـــرګو نم وګڼه

تـا چې پرې غم د خپلې مينې وکښـه
"بـدره " خــوا خـــوږی خپل قلم وګڼه
۱۳۶۷/۲/۲۴

# د مکر جال

ته‌ر د ګلـــو چــې اغـــزو وچیـــړه
هســـــې ارمـــان مې اسویلو وچیړه
بس که ساقي دومره زیاتی څه پکار
زمـــا تنـــــدی دې په نشو وچیړه
د مکـــر جال دلته دی چا خور کړی
تـــار د جنـــون چې لیـــونو وچیړه
دا چــــې پیغــور مې د غمونو وړمه
دا خــــو مې زړه ستا په یادو وچیړه

بــدره باور مې په باور شته دی خپل
خیــــــر که مې ذهن په فکرو وچیړه
۱۳۶۷

# خوني محل

سترګې دې شوې ډکې له ژړا په څه
مینــې دا دې وکــړلــه ښیرا په څه
لاړې چې جونګــړې د ښکلا وو ته
راغلې دې خوني محل ته بیا په څه
یـاره ستا خو زلفې وې پر مخ پرتې
دا شـــــوله پیدا دلته رڼا په څه
دا خــو هــم ته وګڼه چې څه وشو
اوښکې راغلې سترګو ته زما په څه

بدره چې دې نه غوښته خیالونو کې
بیـــا دې ورتـه وویلې اشنا په څه؟
۱۳۶۷

# هرکلی

څنګـه چـــې خپه ومه په تلو د یار
هســـې یم خـــوشاله په راتلو د یار
مــــه وایـــه رقیبه بد یې مه وایه
زه هســـــې روان یمه په پلـــو د یار
وخت چې هرکلی مې د پښتو کوي
خود شوه راته ګرانه نن پښتو د یار
سترګې یې په مینـه چې رابولي ما
ځای مـــې د ځان وینم په بڼو د یار

بدرچې خوشال پرې خپل خاطر ګڼي
ښکـاري یې باور بیا په وعدو د یار
۱۳۶۷

# ښکلا

پس له مودو نه نن شپه
پاس د اسمان په سینه
د ښکلو ستورو منځ کې
دا تل په لاره، انتظارې ستر ګې
له مینې ډکې د نظر شونډې مې
په وربدو وربدو
د سپوږمۍ سپینې ښکلا
اناري سره اننګي
په مینه مینه ښکل کړل
چې په همدې خوندونو
جوتې د خوب راغلې پرې
او په شیبه شیبه کې پټې شولې
سهار چې پاڅیدلم
پاس مې اسمان چې وکوت

په کې مې ونه لېدې
هغه د ستورو جلګې
هغه ښکلا او هغه سره اننګي
خو زه په دې پوه نه شوم
چې ته مې خيال ته راغلې
جفا مې ياده شوه ستا.
خو نه، زه وپوهيدم:
چې تا ښکلا لرله
او نازېدې په هغې
سپوږمۍ هم ښکلې ده لا
ښايي هغه هم، ناز وکړي نور
او له همدې نه خو زه
پوه شومه چې:
ښکلا د ناز نامه ده
په کې وفا نشته ده.
١٣٦٧

# پښتني فکرونه

جام چې په لاس کې د ساقي ښکاري
زړه کې یادونه لیوني ښکاري
دا خواثر ستا د ښو دی که نه
زړه په سینه کې چې زخمي ښکاري
د مخ ډیوه دې په ورو ورو لګوه
تیاره محل دی چې سړي ښکاري
چې د راتلو نښې دې نشته اشنا
مینه او ژوند راته پردي ښکاري

چې مې سر تیټ د چا ښایست ته نه شي
سر کې فکرونه پښتني ښکاري
۱۳٦۷/۱۲/۲۹

# اقرار

پخوا یو ازې ومه
چا پېژندلم هم نه
چا راکتلې هم نه
د چا په خوله هم نه وم
هسې بې نوم وم اشنا
خو چې په تا مین شوم
د هر چا خوله کې شومه
هر چا راته وکتلې
ټولو هم وپېژندم
یو ازېتوب نه خلاص شوم
هر څیز رقیب شو راته
او د خپل ځان دښمن شوم
کاشکې چې نه وای مین
کاشکې چا نه پېژندی
او د چا خوله کې نه وای
ځکه د هر چا په زړه
لکه د کاڼو په څېر وورېدم

۱۳٦۸/۱/۳۰

# لېوني فکرونه

کـلـه د ګـلـو پـــه ککو خـــوږېـږي
سـتـرګـې زمـا چې پـه اغـزو خوږېږي
د لـیـونـي زړه لـیـــونـي یـادونـه
پـه لـیـونـو خـپـلـو نشـو خـوږېـږي
اورنـګ اورنـګ چې شول وختونه راته
ژبـه پښـتـو مـې پـه پښـتـو خـوږېږي
خبـر دی کـــه خپلـو فـاصلـې ونیـوې
مینـــه مـې کلـه پـــه پـردو خوږېږي

بـدره د ننـګ جـذبې سـرې نه دي لا
زړه پـه پښـتـو د پښـتنـو خـوږېـږي
۱۳۶۸/۲/۲۳

# د عشق بلا

پروت د جنون دي چې په در لیوني
اخلـــي بـلا د عشـق په سـر لیوني
دا چـــې د مینــې محـلـه یــاد بږي
لــه هغــه ځایـــه دي خبـــر لیوني
په کې یادګار د لـیونتوب شي پاتې
چـــې کړي پـه کومه لار ګذر لیوني
عقلمندان دي چې په منځ کې پاتې
نیــــولې لارې لــــــر او بر لیوني

بـــدره له مینـــې نه غیر مه وایه څه
غـــوارې خوښي که ته د هر لیوني
۱۳٦۸/۴/۲۲

# د تلو خبره

چې مـــې ارمان پرې ژړېدو کې تېر شو
ژوند مـــې د مينې په ترخو کې تېر شـــو
اوس په ليدو دې خوشالي چې کـــــوم
په ما خپګان دې نه ليدو کـــې تېر شو
شـــېبـــــه خـــبره وه د تلـــو خـــبره
کال دې اشنا په بـــيا راتلو کې تېر شو

چا کړې بنـــېـــرې چا دعـــاګانې بدره
دا چـــې مـــې نـن په حادثو کې تېر شو
١٣٦٨

# د احساس قرباني

دا چــــې ژړلــی ژړېــدلــی نه شم
لکــه پخــوا زه خنــد ېدلی نه شم
راتـــه کـــــوم چـا قسم په تا راکړی
نن چــې دې کلـي ته درتللـی نه شم
دا خـــو حــالاتو مجــبور کـړی یمه
چې دې پــه مینــه ښکلــولی نه شم
هم مـــې ژړا هـــم مې خندا هېره ده
چې په هیڅ رنګ درته کتلـــی نه شم

ده مجبوري او د احســــــاس قرباني
څه چې زه غــوا ړمـــه ویلــی نه شـم
۲۸/۴/۲۰

# د ژوند کيسې

لارې د مينـــې دې کـــړې ښکاري
درته مــې زړه کې څه ګيلې ښکاري
چـــې راتـــه وايې نن سبا راځمه
دا ستــا رښتيا کومې وعدې ښکاري
خــــود بـــه له دې کلي نه کډه کوم
دلته کيســې د ژونـــد زړې ښکاري
په پســـــرلـي مې باور راغی هله
لاس کې دا ستا چې نن غنچې ښکاري

بـــــــدره پاڅېږه روانېږه ژر ژر
د يـــــــار له لـوري اشارې ښکاري
٦٨/٩/١٠

# د مجبورۍ خندا

نن بیا مو چې خوارۍ کې د ژوندون منګولې سرې دي
جانانه ما او تا کې د سمون منګولې سرې دي
رندانو چې رندۍ کې د یو بل وینې کړې تویې
په دې کې د ساقي او د جنون منګولې سرې دي
خندا د مجبورۍ ده هیڅ هوس په دې کې نه شته
زموږ مجبورۍ کې د بیلتون منګولې سرې دي
ګلونو ته د مینې چې اورونه ورته کېږي
بس دلته د حالاتو د بدلون منګولې سرې دي

یوې ادا د یار ته چې هم مړ دی هم ژوندی دی
په مینه کې د بدرد خپل یون منګولې سرې دي
۱/۹/۲۸5

# په وينو رنګ

چې پرون مو په ليمو ځاى وركولو
نن نازونه خامخا به وړو د ښكلو

چې سپېره تقدير بدل كړو ترينه خلاص شو
څه به وكړو مونږ بغير له ځان وژلو

كوربانه چې په مېلمه مېلمه كې وشول
څه كاني په مونږ نه كړې نابللو

چې موسكا باندې يې لاړو په وير سر شو
اوس مو لاره ترينه نشته د وتلو

چې خاطر مو د ساقي په كې ونه كړ
له محفل نه يو ملګرو د شړلو

هومره زړه نيولي تلليو باندې نه يو
څومره وير كې چې اخته يو د راغلو

یـــو د بل په وینو رنګ یو د اسې وخت دی
ځای مو نشتــه هیـــــخ د ناستې پاڅېدلو

چې ګـــــودر ته دې پـــه ورو یې ملا کړېږي
دا منګـــــي دي پــــه رښتیـــــا د ماتولو
۱۳۶۹/۲/۲۷

# اقرار

مورې د ښکلا مينان
ټول سره يو ځای و له ډېرې پخوا
*زمورږه مينه وه له يو بل سره*
خو ليوني رقيبان
زمورږ د مينې له ډار
زمورږ د مينې د ښکلا سيمه کې
تخم د شک او د کينې وکاره
مورږ يې د شک او د کينې په اور کې وسيځولو
مورږ يې ترې کړو په زوره يو د بل وينو ته
***
خو له مودونه وروسته، چې سره ترغاړې وتو
د هغو سره په وينو سره لاسونه
زمورږ د مينې مينه ناک ګريوان ته وغځېدل
غواړي زمورږه دا شلېدلی ګريوان
لا پسې نورو شلوي
لا پسې نور...
۱۳۶۸/۳/۷

# د وفا جامې

په اور د مینـې چـې ستي به نه یو
مـوږ لیـونـي ځـه لیوني به نه یو
زمــوږ خپګـان رقیبه هسې نه دی
چې لــه یو بل ځنــې راضي به نه یو
چې د وفا جامې په ځان کړي ښکلې
ملګرو موږ چېــرې ژوندي به نه یو
قــدم بــه اخــلو د ثــواب په لاره
خــو لــه ګنـاه ځنې خالي به نه یو

بـدره رقیـب سـره کـه غـاړې وتـو
خـو پښتـانه او میــړني بـه نـه یـو
۶۹/۲/۲۷

# وېره او کرکه

موږ چې واړه وو
له تیارې او تورې شپې وېرېدو
ځانله یوازې کور نه، نه وتلو
بس وېرېدلو هسې، شپې نه مو کرکه کېده
***
غوښتل مو دا چې: دغه شپه هم ورځ وای
خو هسې کله کېده او هسې کله وشو
***
زموږ په دې وېره وه
چې په تیارو کې د شپې
کوم څه خوړونکي او داړونکې بلا ګانې وځي
لکه شیشکه، لکه مار او لکه تور وهمونه
او موږ په دې وېرېدو ، شپې نه مو کرکه کېده.
خو اوس
اوس مو له شپې سره له ورځې نه هم کرکه کېږي
هسې په ځان وېرېږو
او په ډاډه زړه ګرځېدلی نه شو.

۶۹/۲/۴

# د مینې لاره

خدایه چې مینه کې سره خونه ده
لویه خبره ده وړه خونه ده
زړګیه! څه داسې خپه خپه یې
د یار له خولې وتلې نه خونه ده
رقیب دې دا نیسي په نورو بهځم
لاره د مینې څه یوه خونه ده
ساقي غوسه دې تسبې مه اړوه
ده میخانه شیخه کعبه خونه ده

چې سترګې سترګې بدره لارې څارې
نن د راتلو یې څه نیتهه خونه ده؟
**۲۹/۸/۲**

# متکور زړه

دغـه منـم خا مخـا زور او به شي
د چـا پـه غـم زړه متکور او به شي
لیوني خدای نه به نور څه وغواړي
چې ورته ښکلي په هر لور او به شي
زړګیـه راشـه چـې بـس دا ومنو
د مینې سترګو ته سور اور او به شي
مالت د مرګ او د سرو وینو چې وي
د یـو خطا کې به خود نور او به شي

ښایست چې ناز شي او په تله کې شي
بـــدره د زړه د مینې شور او به شي
۱۳۷۰/۱/۲۱

# د ښېرو بام

ګــورئ زمــا که شوله ساه په ختو
بــام د ښېــرو ته ده لیــلا په خــتو
لــه ډېــرې مینې که له کبره دي دا
چــې مــې په ولو ده اشـــنا په ختو
هـــــره شیــبه مــې دې ژړا ژړا شــي
که شي له خولې نه مې خندا په ختو
رڼا د دوه ســـتر ګــو یې مله ده زما
لمره چــې نه یمـــــه دا ستا په ختو

بدره ځــه تنــدر خـــو به نه رالوېږي
که مې له خولې نه شي رښتیا په ختو
۱۳۷۰/۹/۱۱

# لویه خدایه

لویه خدایه لویه خدایه
ستا په مینه په هر ځایه
غر ولاړ دی درناوی کې
ټولې ژوې په زارۍ کې
***
ټول په مینه عبادت کې
یو همیش دې په طاعت کې
دا تورتم زموږ رڼا کړه
دا ژړا زموږ خندا کړه
زړه له زړه سره اشنا کړه
بې مینې ورکه دنیا کړه
چې شو مینه سر تا پایه
لویه خدایه لویه خدایه
****
چې خوشاله مو شي زړونه
ترې په تله شي ټول غمونه
د وفا نوم را ژوندی کړه
دا خزان مو پسرلی کړه
چې په کار تل د یو بل شو

دا پردي نور سره خپل شو
چې پردي نور له ژړا شو
څو مره ښه چې په خندا شو
ای په هر څه کې نمایه
لویه خدایه، لویه خدایه
****
په یوه لار چې په تله شو
یوه ژبه یوه خوله شو
چې شو یو د بل په مینه
توې د یو بل، نه کړو وینه
کلکې خپلې ارادې کړو
زړه نه لرې وسوسې کړو
چې منزل ته په مزل شو
یو د بل د لارې مل شو
داسې وخت راولې خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

ګردیز- پکتیا
۷۰/۴-۱۸/۱۹

# د توبو په زیر و بم کې

غوټۍ ګل شوله د مینې د ښکلا نغمه خوره شوه
د پسرلـي د وير په شونډو د خندا نغمه خوره شوه
ښتنه مې شوله مينه د هوس زنځيـر يې مات کړ
دنيـا رنګـه د بلا شـوه د حيـا نغمــه خوره شوه
د زاهـد ساقـي پـه مينه شوه رندانو ته لار سپينه
د توبو په زيرا و بـم کـې د ګناه نغمــه خوره شوه
وېدې سترګـې شولې ويښې د بڼـو پنجرې ماتې
تورتمـــــونو د سکوت کې د رڼا نغمه خوره شوه

د راتلــو پــه يو خبــر يې چــې مينــه لاره ځــارم
بــدره ما تــه له پيغــوره د پنـــاه نغمه خوره شوه
۱۳۷۰/۱۲/۲۲

# دوکه

راتــــه چــې ښکاري چې دنیا دوکه کړم
مینـــې دوکـــه کړمـــه اشنـــا دوکه کړم
چې د رخسار په رنګ یې رنګ نه شومه
خپلـــو فکـــرونـــو هـــم سودا دوکه کړم
وایـــه دوکـــو کـــــې دې دا څـــه لیدلي
لکـــه پـــرون دې چـــې نن بیا دوکه کړم
د هیلـــو بـــڼ کـــه مـــې تالا ترغـــه شو
د لیـــونـــو ستـــرګـــو ښکلا دوکه کړم

د چـــا جفـــا نـــه چـــې ګیلـــه نـــه کوم
بـــدره خـــوزه خپلـــې وفـــا دوکه کړم
۱۳۷۰

# هیله

ته چې وایې
لکه ما دې خدای حیران کړه
لږ څه ځیر شه
لږ دې زړه نه تپوس وکړه
چې څه وایې
بیا چې هر څه دې زړه غوښته
راته وایه
هان تر سپورو
هان تر ستغو.
لږ څه ځیر شه
لږ دې زړه نه تپوس وکړه
ځکه زړه دې دی
هنداره زما د مینې
۱۳۷۰ مرغومی

# اوراو وينې

لکه زما د چا په غم لمبه شو
وطن مې وسو هر قدم لمبه شو
سيوری د شوم نظر چمن کې خور شو
د ګل په شونډو کې شبنم لمبه شو
د اوراو وينو کيسې ختمې نه شوې
ژبه لمبه شوله قلم لمبه شو
ځای د څه ښېنلو او توبو مو نشته
هم ميخانه او هم حرم لمبه شو

بدره مجبور کړې په سر چې ښکارو
زمونږه کلی زمونږ چم لمبه شو
۱۳۷۱/۹/۵

# د شعور رڼا

ځــو ځـو کـه مجبـور او کـه مختار يمه
شيـخــه ســم روان پخـپــلــه لار يمه
څـه دې وې چې ستا پـه پلونو تلل وکړم
دا لکــه دا ستــا چـــې پـه اختيـار يمه
لا چـــې څـه اميـد مــې تخنـوي زړګی
لا خــو د هغــې ښکلـې پـه کــار يمه
څنګـه ميخـانــې نـه لاس پــه سر شمه
لا خــو چـې خمــار يمــه هوښيـار يمه

تلــه د خپــل شعــور چــې پـه رڼا کوي
بــدره د هغـــــو يــارانــو يــار يمه
۱۳۷۱/۱۱/۱۴

# د امید ننبه

زه چې وایمه د ګل مینه په غیږ کې د اغزي ده
رقیب وایي لیونتوب دی فلسفه د لیوني ده
د امید مینه چې نه تخنوي زړونه مو په مینه
داسې وخت داسې شپې دي د نفرت مهرباني ده
اسمعیله ستا په غاړه به چړې بیا بیا تېرېږي
له زړګي نه د خلیل چې پاک الله سره دوستي ده
مینه مینه ای زړګیه څه په مینه مینه وایې
چې په مینه پابندي ده بې وسې کې زندګي ده

چې په ضد د زمانې د روایاتو یمه بدره
چېرته ننبه د غم وړونو انګازه چېرته مستي ده
۱۳۷۱/۱۲/۲

# د خیال سکوت

جانانه وایه چې خپه په څه شوې
ښکېل د شوګیر څڼوکې شپه په څه شوې
چې زړه راښکون نه د بلنې وایې
بیا په راتلو زما غوسه په څه شوې
چې ستړې روح دې زما ستړې غوښته
د خیال سکوت کې مې نغمه په څه شوې
چې په بیان مې پابندي لګوې
نو مې په زړه کې ولوله په څه شوې

پېرزو دې نه وه چې اغزي په بدر
مینې سبا په څه وږمه په څه شوې
۱۳۷۲/۱/۱۰

# د کابل غمیزه

کړ مرګي په تندي ښکل
شو په وینو ســور کابل
سترګې ډکې شوې له نم
سور پـــه وینـــو هر قدم
شو د ناستې پاڅـې غم
لاس ګریوان کې د یو بل
شو پـــه وینو سور کابل

***

د وېـرونــو انګـــازې
لـــورا لـــورې راخــورې
شـــوې د مینـــې جنـازې
د هـــر چـــا پـــه اوږه خپل
شـــو پـــه وینو سور کابل

***

پښــه نیـــولـــې پسرلي
هـــر قـــدم ځوزاو اغـــزي
لیـــونتـــوب د لیـــوني
پـــه ارمـــان ارمان د ګل
شـــو په وینو سور کابل

***

ژبــه نــه شــوه پــه يوه

ښــه خـــوږه شوله ترخه

سمــه لار شــوه تاتـــره

د يـــو ځـــو پـــه تغافـل

شـــو پـه وينو سور کابل

***

هـــره لار هـــره کـــوڅـه

شـــولــه تنـګه او تياره

لاخـــو شـــاړه او سپـيره

د پـيــړۍ پـــه تـکامـــل

شـــو پـه وينو سور کابل

***

ډيوه مړه شـــوه د خنـــدا

ستــــرګــو ونيـــوه ژړا

هـــر اشنـــا شـــو نا اشنا

ټـــول خـــويــونه د مغل

شـــو په وينـــو سور کابل

۱۳۷۱/۱۲/۱۴

# مست لېوني

چې هم په سترګو هم په زړه غولېږي
مســـت لیونـــي په یو کاتــه غولېږي
چـــې غـولېدلي دي په هوښــه کې لا
په بد مستۍ کـــې به څه نه غــولېږي
خپلــو ملګــرو تـــه چــــې ګــورمه زه
له خپل اخلاصه په خپل مله غولېږي
چـــې د ژوندون پـــه مـــزه نه پوهېــږي
هــم په خـــواږه هـم په تــرخه غولېږي

بـــــدره د ښکلـو په خندا چې مړه دي
دا سـې سـاده خــو ډېر ساده غولېږي
۱۳۷۲/۹/۲۵

# ګناهونه - ثوابونه

د ښایست د ســــــپرلي مینه کې ګلونو ته شوو سترګې
چې پرې ځان او زړګی وسوځو اورونو ته شوو سترګې
شو ګیرونه مو شو ګېـــــرځپلـې سترګې لا په لار کړې
د خــوبـونـو محلــونـو کــې خــوبونو ته شوو سترګې
ګناهــــونه ثـــوابـي شــول، ثـوابـــونــــه ګنـاهــونــه
ځـــکه میـنــــه د جنت کې دوزخــونو تــه شوو سترګې
جل وهلـــې ځواني ګرځو جـل وهــلو ورځــو شپو کې
چې پیدا مینه د ژوند کـــړو امیدونو ته شـوو سترګې

دژونـــــــد نـــاوې شوه ســرتوره د امـید مرۍ خـپه ده
د خندا موسم کې بدره چې مرګونو ته شوو سترګې
۱۳۷۳/۷/۱۸

# د نظر تار

چې مــې نظر پــه کـو مه لار خوږېږي
قـدم قــدم پــه پـلو د يـار خـــوږېږي
شيخــه د مرګ ګوابښ راته ثـله کوي
زما خـــو سر پـه سـر د دارخـوږېږي
د وينـو سـره زمـا د زړه جـــانـانـه
د اننګيــو دې پــه قــار خـــوږېږي
دا چې پـه وار کې بې واری، واخيستم
خو بــې واري مــې هم پـه وار خوږېږي
عشـقه زمـــا د اميـدونـو سـتـرګې
ستـا د نـظر پـه هـــر يـو تـار خوږېږي
سـتـرګې د يــار بـه شـي خـوږې پـه بدر
چــې يې مړې سترګې پـه ما خوار خوږېږي
۱۳۷۳/۳/۱۴

# ترخه غمونه

ستوري چې ډکې شـــي نو وورېږي
وريځې چې نه وي اسمان نه ورېږي
ښکاري اشنا راته وي ستـــورې د چا
چې تــاوده زړونه مو ســاړه ورېږي
چــې د يــادونـــو دې خــوا ره وروي
خيــر که غمونــه دې ترخــه ورېږي
وې دې چې څوک ليوني نشـته پکې
پــه دې کوڅـه کــانـې په څه ورېږي

چـــې زه به هـــم ورلره يـاد يم که نه
هغـــــه خــو هر دم مـې په زړه ورېږي
۱۳۷۴/۸/۳

# خدایه خیر کړې

غم مې بیا غم د جانان دی خدایه خیر کړې
غریو نیولی مې ارمان دی خدایه خیر کړې
د وطن مې د ولس په ژړا سریم
د مرګونو پرې باران دی خدایه خیر کړې
د وجدان مری خپه عاطفه مړه ده
د انسان دښمن انسان دی خدایه خیر کړې
بلا لارې ته چې داسې په ځیر ګوري
د ارمان کاروان روان دی خدایه خیر کړې

تقاضا د زمانې نه پوره کیږي
بدرځان پورې حیران دی خدایه خیر کړې
۱۳۷۴/۸/۳

# نیم نظر

هــره ســاه چــې ساه ختلې زنده ګي ده
غــریبي ده مجــبوري ده پــریشانــي ده
هــره ورځ د نهیــلیــو مــاتمـــونـــه
هـــره ورځ د ارمـــانـونـو قــربــاني ده
دا چـې نیم نظر یې خور اوربل ته ګورم
دا زما د یار په غـم کـې ستـومـاني ده
لیوني دې خپل نظــر په کاڼو مات کړي
چې تـرڅـــو د رقیبـانــو واکمنــي ده

چـــې کوڅه په کوڅه خیر غواړمه ګرځم
بـــــدره مینــه کـې مــې برخه ګدایي ده
۱۳۷۳/۹/۱۴

# ژوند

ته غوټۍ د ګلو یې
زه په نغمو روږد بلبل
ته د خندا شین سپرلی
زه له رنګه ژېړ خزان
ته یې ازانګه د عشق
زه په دار د حق منصور
ته یې د رڼا ښکالو
زه تورتم خوړلی یم
ته ښکلې هنداره یې
زه درکې ځان ګورمه
۱۳۷۴/۱۲/۲۲

# پاکه ګناه

بیا دې ژړېږمه وعدې په سلګو
بیا له ماښامه دې ډېوې په سلګو
یاران په ځان پورې یې چېرته اخلي
که نه اشنا دې یارانې په سلګو
بیا دې زما په اوښکو وخندلې
بیا راستنې دې کړې جرګې په سلګو
ګوره زګیروي زما د پاکې ګناه
خولې ته مې راغللې توبې په سلګو

سهار ماښام چې په کې ورک وم بدره
هغه د مینې دې کوځې په سلګو
۱۳۷۴/۲/۹

# خودي او بې خودي

عشــقه حیران یمـه چې څـه کومــه
هغـه کـومـه چــې یـې نــه کـومه
ژاړي او خاندي ســتا یــادونه اشنا
هر څه کې خوښـــه چې د زړه کومه
د مخ او زلفو دې چې یاد کې شمه
کلـه رڼـا کـلــه تیــاره کـومــــه
ارمـانــه بیــا دې قـربـاني ورکوم
څـوا سویلــي ســاړه ســاړه کومه

بدره یو غړ چې د خــودی شومه زه
د بـې خـــــودۍ پـه لاره تلـه کومه
۱۳۷۳/۱۲/۷

## زموږ کلی

هلته چې څوک
چېرې زما په کیسې
غوږ نه باسي

***

هلته چې څوک
د چا خبره نه اوري

***

هلته چې سرې د شپې منګولې
د سهار په ستوني
ښخې دي لا

***

هلته چې ښکلې ستوري
خلک په کاڼو ولي

***

هلته چې مينې ته د عشق په سترګو
نه ګوري څوک
هغه،
هغه زموږ کلی دی
چې رقيبان په کې واکداره دي لا.
۱۳۷۴/۷/۱۲

# موسکي ګلونه

ټول موسمونه پســــــــرلي غواړمه
د ژوند ګلونـــه دې موسکي غواړمه

د غمــو سترګــې درته مــه شه چېرې
تل دې په ژونـد کې خوشالي غواړمه

چې وي بــې خــوده د خودۍ په مینه
ژوندي همــــــداسې لیوني غــواړمه

د پــیغــلـــې مینــې د وربـــل ګلــونه
د احســـاســـاتو مـــې زلمي غواړمه

یون چې تکـــــل وي د ازمون په لاره

## د میـــړني قـــــــام میړني غواړمه

## د نن لـه ســـــترګو نه اورونـــــه اوري
## ګلونـــــه سترګې پـــروني غواړمه

## د قام چـــې مات انځور پیـوند کړي زما
## رونبان، احمد ، خوشال، هجري غواړمه
## ۷۴/۸/۲۴

*نومونه:*
*یون، محمد اسمعیل یون*
*ازمون، لعل پاچا ازمون*
*تکل، احمد تکل*
*انځور، زرین انځور*
*پیوند ، علي ګل پیوند*
*رونبان، بایزید رونبان*
*احمد ، احمد شاه بابا*
*خوشال، خوشال خان بابا*
*هجري، اشرف خان ختټک*

# ګنهکاره توبې

پـه مـا وربـړي چـې بـې واره توبې
دا مــې وتلــې لـــه اختيـــاره توبې
د ګــنا هــونـو کـــه لـوربـــړي پـــه ما
راځــي مـې خولــې تـه ګنهکاره توبې
لا ګـــنا هـــونـه وارلـــه واره راځـــي
لا چې کـــومــــه وارلــه واره تــوبې
ګناه مــې ستا پـه شانتې نــه ده کـــړې
چـــې دې کـومــه تــر سهـــاره توبې
شيـخه له مـا هـم ګنـا هکـاره ښکاري
اورمـــه ستـــا چـې دا بيشـــماره توبې

عشـقـــه دا ستـــا چـې ګنـهکاريـم بــدر
خـــــــود بـه کــــومه ستا لپاره توبې
۱۳/۹/۱۳۷۴

# کوچۍ مینه

نه پرېدي خوښۍ نه مې غمونو ته
فکـر یمـه وړی ستـا یادونـو ته
ګل یې خـو چې ګل درلره نه وایم
اوروورتـه کوي دلتـــه ګلونو ته
مخ ګلاب، نظـر ګلاب، ادا ګلاب
خوب ګورم چې دانګمه اورونو ته
عشق چې نظر نه شي سپیلنو په نوم
اچـــو اورونــــه خپلو زړونو ته

چارې اخـــر وکړلې کوچۍ مینې
وختمـه بـدره جګـــو غرونو ته
۱۳۷۲/۵/۳۰

# جدا جدا غمونه

کلـــه پـه جـام او پـه مینـا ماتېږي
زمـا چـې تـنده پـه یاد ستا ماتېږي
لکـه غـمـونه چـــې جدا جدا وي
هســې مـــې زړه جـدا جدا ماتېږي
د لــیونـو زور کــــــه دې ولیـدلـو
رقیبه ســـــر دې خامـخا ماتېږي
یــــو زما زړه دی چې هر دم ماتېږي
یــو ستا وعـدې چې هر سبا ماتېږي

بدره چې نه یــې سوځي سترګې په ما
زمـــــا نظـر پــر هغــې لا ماتېږي
۲۰/۱/۱۳۷۲

# افغان زړه

لیـــوني زړه چې اور په ځـان اخستی
چـــا ورتـه نـــوم بیا د جانان اخستی
ژوند کې چې ماته دی د بر ګران لوېدلی
هغـــه زړه تـــا رانـــــه ارزان اخستـــی
رقیــــــب په عشق بولي د مرګ سند ره
لاس کــــې یې تیغ سره قران اخستی
زړه مې افغان دی ټیټ کاته یې نه زده
خـو یې قلنګ د عشق په ځان اخستی

د خپــــــــلې ورکې د کاروان په مینه
بـــدر قـــدم په بیـــــابان اخستی
۱۳۷۷/۲/۲۵

*د ملیار کاکړ د واده په موقع*

# یو نیزاره شور

شپه ده د خوندونو په خوندونو کې
جوړه زلزلـــه ده پـــه دوه زړونو کې
ساتـو بـــــه ابـادي د نـــوا کوڅې
یـــــــو نیزاره شور لـرو سرونـو کې
ژاړو د ارمـان مــــــاتـو منګیو ته
مــــــورې د خپـل نظر په ګودرونو کې
وختــه ستا له میني مورې تاو کړي دي
زړونـــــــه د زخـمونو په شا لونو کې

بـــــــدر زه ملـیار د هغــه بــڼ یمه
خانـــــدي یې جانان چې په ګلونو کې
۱۵/۸/۱۳۷۷

# د مینې تنده

د عشق په شین فصل مې ووري د لوګرو باران
د خنـــدا پیغلې راته قتلې کړې د زغرو باران

پــه ورانــه غاړه د ګــودر ماتو بنګړو ته ژاړم
ورکــوم للمې د زړګــي ته د سنـــدرو باران

ښکلې ده هســـې کبـــرجنه که نه ښه پوهېږي
چې د غوړو کچکول کې غـوارم د خبرو باران

غواړي دورې ستا د کوڅې خوالوتلې نه شي
د خیال کوتـرې مــې وهــلې پــه وزرو باران

دا لیونـــي زړونــه زمــوږ د مینــې تنده وژني
خدایه پر کلي مو رامات کــړې د دلبرو بـاران
د تورو سترګو یو وار هم پـه زړونو نه لګېږي
د غرونو لاره ورکه کــــړې د ګورګورو بـاران

د انتظار د لارې پيغـــلې تـــه د هـار په مينه
د سترګو سيند مې بهوم د مــــــرغلرو بــاران

سم دم په ډاګ کې زما د خيال په ښا پېريو بدره
ووري همدا شېبه شېبه د جـــــادوګرو بــاران
1377.8.20

# پېغله نوا

لکــه ګيلـې چـــې لــه جانانه راځي
خولې تـه سلګۍ مې له ارمانه راځي
د مــينې شمـس بيا ځورولی دی چا
خوږمـــن اواز دی له ملتـانـــه راځي
حســـن ارزان نه دی هـر چاته نه دی
ګرانــه سودا لاس ته پــه ګرانه راځي
زلمـی شپونکی ارمـان له ځانه وتی
پېغـــلـه نـوا لــه نيستـانـه راځي

بــدره چـــــې ځـپر يې د مـينې ګڼم
بـاران د کـاڼـــو لـه اسمـــانه راځي

# شپونکی ارمان

غم غم د زړه تارو ، نه مې سندرې دي راتاوې
له بامه د خيالونو مې کوترې دي راتاوې
دا هسې ليونی او سترګې سترګې چې ورګورم
نن ډېره موده پس رانه دلبرې دي راتاوې
نوا نوا له سوزه چې شپونکی ارمان مې ژاړي
د مينې له نيزارو نه لوګرې دي راتاوې
جادو هغه جادو ده او هماغه جادوګر دي
خو-بيلې نوې نوې څه منترې دي راتاوې

جانان راته وې بدره چې نږدې رالره نه شې
شاعر يې ستا سينې څنې بخرې دي راتاوې
۷۷/۷/۷

# د حیا مینه

یو سترګي خیال یمه د مه غواړمه
د زلفو غېږه کې دې شپه غواړمه
چې په کې ورمه د نظر ببرۍ مې
د سترګو سیند څپه څپه غواړمه
له شوره غلی چې درګورمه دا
د حیا مینه کې بوسه غواړمه
چې پر هرونو سره مینه کوم
زړه څراغان ډیوه ډیوه غواړمه

د مینې اوره ځه لمبې ښکلوه
د ښکلا مخ خوله خوله غواړمه
۱۳۷۷/۱۰/۳

# د بې نیازۍ دم

کلی د شور دی دا منمه خو څوک ساز نه کوي
د زړه تارونه مې اوده دي هیڅ اواز نه کوي
ریبار رښتنی دی منم خو ملامت هم نه یم
جانانه هر چا ته خبره څوک د راز نه کوي
یو خوا ملا په موړه دم د بې نیازۍ کړی دی
بل خوا له ښکلو ادا هېره ده او ناز نه کوي
انداز د سترګو دې د باز بدل بدل غوندې دی
د زړه کوترې مو چې غلې دي پرواز نه کوي

خوا ره له زړه رښا چې سترګو نه دې اخلي اشنا
د بدر دا سې کلام څنګه به اعجاز نه کوي
۱۳۷۷/۸/۷

# جانان

دا د موسی سترګو مې نور دی جانان
د مینـــې هغــه کــوه طــور دی جانــان
پــه تــار کــې پټ د شــومه دم د ستار
یــو غلی شور غـــلی سرور دی جانان
زړګی یـــې شتــه خو مینه نــه شي کوی
ما ته راګــوري نه، مجــبور دی جانان
داسې تــرور وختــونو واخیست پسې
چــې اوس لــه ځانه هم ترور دی جانان

د زړه د بـــاغ د ګلــو پاڼــو کـــې شین
لکه پر هـــر په وینـــو ســـور دی جانان
۷۷/۹/۷

# د خوب ډولۍ

سـنـــد ریــزه تنـــهـا یــي ده د ژړا پـــه تـــال سـنـد ره
را یـــاد پـرېږي مــــې جـانــانـــه سـتا یـــوه یـوه خبره
دا بـه څه شي که مې زړه او سترګې اوښکې وینې راشي
د ښـــــامـــار و زلــفـــــو میـنه غـواړي لال او مـرغلره
هـره شـــپه د خوب ډولۍ کې مـې د سترګو ویده کېږي
یــوه پیغـــله ښا پـېرۍ د قـاف لـه غـرونو سترګوره
چـــې هغـه دنیــا بـې حورې او غلمان نه غواړې شیخه
اخـــر دا دنیـــا هم کــېږي بـې یـارۍ او بـــې دلبــره؟

چـــې ګـودر دی خو په ښکلو بې له ښکلو ګودر نه دی
بـدره مــــا لیـدلي نـــه دي میـن زړونـه بـې پرهـره
۱۳۷۷/۱۰/۲۷

# د زړګي لپه

د ځوانــۍ خمــار زما کــه سرګردان او تار په تار دی
ستا سینــه د مشکو ښــار دی د لونګو جوړ بازار دی
د زړګــي پــه لپــه وینـــــــــي هــر پر هــر ته ورکومه
ارمان مــخ را اړولــی وایــــي پــار نــن د بهــار دی
شیــخه راشـــــه چې له زړه نه داسې روغه سره وکړو
زه پــــر تا چــې نه لګېږم نو دا ستا پر ما څه کار دی
پــاړوګـــره د عشــق غــواړي چې د مینې هوده وایي
بیــا چیچیلی کــوم مین د زړه په سر د خمار مار دی

د نـــــوا پیغلې لــه مینې ورنــه تــاوې دي چې بدره
جـوړ ارمان زما شپونکی دی دا زړګی زما نیزار دی
۱۳۷۷/۱۰/۲۷

# د غزلتورو آئینې

عشــق د زمرو ســترګو ، چــې هغه لیونۍ نه لري
زمــوږ د زړونـو دښتې شاړې دي هوسۍ نه لري
شپیلۍ شپیلۍ چــې په کې پیغله نوا ونغاړمه
کوچۍ سنـدره مــې د درد هغــه کېږدۍ نه لري
چې هر سهار ویده ویښېږي، ویده خوب ته ورځي
د کلــي د نـګ چنارونه مو مَرغۍ نه لري
لا خـــو مو مینـه ده پـه عشــق کې پرهرونو سره
چـا وې زمـوږ د هـیلـو نـاوې چې ډولۍ نه لري
د غـزلتـــــورو ائینــې به در تـــه مـخې تـــه ږدي
په تـامیـــن دا ستـــا شـاعـر بلـه ډالۍ نـه لـري
دیو د شوګیر زموږ د سترګو په شپو سیوري کړي
بــدره مـودو نـه مــــو خوبـونـه ښاپېرۍ نه لري
۱۳۷۷/۱۲/۱

# د سترګو مینه

زما خبرې نه زده
ما خو ویل درته چې
همدا په ستر ګو ستر ګو
ښه ده پوهېږو سره
ګوره !
خپه شوې اخر
چېرته د خولې خبرې
او چېرته عشق
د ستر ګو
۱۳۷۸/۱/۱۱

# د اوښکو رمې

خولې ته مو نــــه راځــي د خوند خــبره
له مـــــوږه هېـــــره ده د ژوند خــبره
په ليــــونو زړونــــو مو اور لګــوي
جنګ کـــې د سترګــو د اوربند خــبره
سترګـې مې پيايي چې د اوښـکو رمــې
کېږدۍ کې نغښتــې د ايلـبند خــــبره
نه زمــــوږ زړونه شــول په غشو مــاړه
نه ښکـــــلو زده کــړه د پيوند خبره

ملالۍ هـــــيلې مــو په زړو کې بـد ره
په مينه نغـــــــاړي د ميـــوند خبره
۱۳۷۸/۲/۱

# د سترګو شپول

لــه زړه نــه سترګــو ســره مینــه لــرم
وړو کــي کلــي کــې ښــا رونه ساتم
د انتظــار د غشــو نښــه دې کــړم
د شوګېر شپول کې چــې خوبونه ساتم
لا چــې راځې ته د اغــزو موسم کې
لا بــه پــه ســـترګــو کې ګلونه ساتم
د اوښکــو مــخ وروړم ګردونو ته چې
زه پــه دې لارو کـــې پلــــونه ساتم

دا خو چې ښکلیه څراغان دې خوښ دي
له مینــې زړه کــې پــر هـــرونه ساتم
۷۸/۲/۲۱

## پوښتنه؟!

وخته پوښتنه لرم
پښه نيولی شه لږ!
خيال مو د سرو شونډو کې
د زړګي رنګ وبايله
هغه د جل موسم کې
للمي ارمان ته مو خپل
باران د وينو ورکړ
اوس چې د تورو زلفو
دام کې ګېر يو
وايه چې څه به کېږي؟
۱۳۷۸/۳/۱۸

# ژوند

ژوند
یو سیند دی
کله مست، د ځپو ورا سره روان وي.
داسې مست چې لبرېزی نه
ساحل هم په مخه اخلي.
کله داسې شان وي تږی
چې له تندې خپل لاسونه
په دعا وي پورته کړی
د مستۍ او
شور
باران
ته
۱۳۷۲/۵/۲

## پټه

عشقه بلا دې واخلم
مینه کې تا سره مې ځان ورک کړی
راته جانان ورک شوی
درنه یې پټه غواړم

***

کله ماشوم چې وم
ورکوټی ومه
چې به یوازې چېرته وخوځېدم
په نیمه لار به لار شوه ورکه رانه
او ځای پرځای به کرار ودرېدم
چې به مې ولیدل څوک
ورو ورو لمن مې د ژړا نیوله
د چا به زړه را باندې وسوځېده
راته یې لار ښودله

***

کله چې کتې مې د خوب

د کلا څنګ لوېږي
د بري ته و ويست
تر نيمې شپې د پانو شور کې ورک وم
او د همدغه شور په لېچو به مې
سر ا ېښوده
يو وخت
خوبونه را نه
د چا د دوه سترګو
د ياد کوترې
وزرو کې و نغاړل
دورې دورې شوې
او د هسک غېږه کې
پناه شوې رانه
چې بيا مې ونه ليدل
ما مې خوبونو پسې
ان په تورتم کې د شپې
د شوګيرونو لاره ونيوله
له ګړنګونو پسې وا وښتلم
او بيا به ستړی ستومان

کتې ته د خوب په مینه وختلم

****

همهغو شپو ورځو کې
یاد کې د هغو سترګو
له ځانه ورک شوم پسې
داسې یو ورک
چې به ویلې مې دا
چې زه هم شته یم که نه؟
خو کله کله به د درد لاسونه
په پرهرو به مې راتېر شول د زړه
او په یو داسې غږېږې
زما د زړه غوږونه ونازل
بدره زه مینه یمه، مینه یمه

***

له هغې شپې نه وروسته
هغه
غږ
هره
شیبه

په زړه مې لاس تېروي
او زه اوس هره شيبه
په هغه غږ پسې يم
ورپسې ورک يمه زه
داسې يو ورک چې ورک په ورکو کې يم

***

سلام، سلام
عشقه، سلام مې پرتا
درځنې پټه غواړم
راته مې ځان وښايه
راته جانان وښايه
۱۳۷۸/۹/۴

# د ستر ګو ترږی سیند

عشقـــه راوغځــوه لاس د بنګـــړو خوب ویني
د زړه تـاروبـه مې ویـده د نغمــو خــوب ویني
زما د ســترګــو په هنـدارو د بـاران تصویر ته
مړاوی ګــلاب مې د زړګي د ورېمو خوب ویني
زما ملــت تـه ازمیبنــت کــې د خلیـل دعــا ده
د وخت په لېچــو هــره شپه د لمبو خوب ویني
چې هره شپه یې په هنــــــدارو ځلېدل خوبونه
اوس مې د سترګو ترږی سیند داوبو خوب ویني

مینه کې بدر لاس نیولـــــــی د عارفو او ښکو
دې مریدی کې هره شپه د تســـــبو خوب ویني
۱۳۷۸/۳/۲۷

# مینه

مـینه کـوو لـه هـر انسانه سره
موږه ژوندي یو له دې شانه سره
هـره شـپبه د مـینې ذکـر کوم
زه چې غـږېږمـه لـه ځا نه سره
زه خـو ظالـم ورتـه له نـازه وایم
ستم خـو نه ښایي جانانه سره؟
لار د ســـــندرو د بـازار لـټوي
کچکول د روح مې له ارمانه سره
زه یې دې سرو سترګو ته کېنولم
یـاري د اوښکـو لـه ګریوانه سره
جـانـانه بـدر دې یـاد پړم کـه نـه
تـا یـادوم جـان او قربـانه سـره
۱۳۷۹/۷/۱۸

# ستړګې او رانجه

تا خو وې راځه چې نور
د ستړګو لار
بدله کړو
داسې چې وه ګرانې
بیا دې ولې
ستړګې تورې کړې؟

۷۹/۸/۱

# د ارمان رضا

چې دې خندا ته عشقه ما کړې ده
وو ایـــه داســـې ژړا چا کړې ده
مــا دې ژړا تـــه ژړولـــــې ژړا
تـــا مې ژړا باندې خندا کړې ده
مه راته ګوره بیا په غبرګو سترګو
ســــاده کتــــلو دې بلا کړې ده
زه پسې ځم ساقي چې تښتي رانه
ښکـــاري چې څه بلا ملا کړې ده
ستا په انکار چې هم درځم کوڅې ته
مــــا د ارمان خپله رضــــا کړې ده
شیخــــه نو دا سمې له کومه شولې
بدر چـــې ټـــول عمر خطا کړې ده
۱۳۷۳/۱/۱۲

# ماشومه مینه

سترگو نیولی چې د نم لاس دی
د زړه په تار مې ایښی غم لاس دی
مینه کې عشق او جانان ګرم نه گڼم
دې کې زما د زړګي هم لاس دی
دا یو درواغ به درته هم وو ایم
چې د رښتیا راسره سم لاس دی
چې د ولس د لاس ښکلا یې جام دی
پر دې مالت تېرکړی جم لاس دی
چې رسېدلی دی د وخت گریوان ته
دې کې یوازې زما گرم لاس دی
بدره ماشومه مینه ژاړي راته
جانان پټ کړی ترینه مم لاس دی
۱۳۷۸/۳/۲

# د خوب کوترې

سترګو ته نه راځي د خوب کوترې
برند په بڼو د شوګیر باز ناست دی
د چا به مینه وي له ښکلو سره
زما په زړه د ښکلو ناز ناست دی
جانان په دې خپه چې غږ نه کوم
زما له چیغو نه اواز ناست دی
ساز مې د ژوند د ښکلا جوړ دی چې پرې
داسې مې عشق په زړګي ساز ناست دی
چې خوشالي مخ په سالو کې نغاړي
په زړګي پټ د غم غماز ناست دی

لاس په دعا د مینې رب ته بدر
ستا د ښایست پر جای نماز ناست دی
۱۳۷۸/۳/۳

*لعل پاچا ازمون ته*

## يوه خواله

اشنا پوهېږې به خپه يمه ږ بر
هغې شېبې راته زړګی خوړلی
***
دلته کې هر څه د رواج قرباني
بس تش نامه د محبت پاتې ده
دلته کې مينه هم د زور خبره
دا کمزوري لا په قوت پاتې ده
***
دلته لا مور په ته او زه يادېږو
دلته ارمان د فريد سر خوړلی
دلته کې وينه لا په وينه مينځي
افغان خو مرګ ته د افغان وتلی
***
ستا د خندا دې ائينه کې اشنا
زه يې ښه ګورم د ژړا انځور دی
خواری خوړلی چې يې نه پېژنو
دې کې زما دې کې دا ستا انځور دی

***

دا ستا ژړا په ځان خندا ګڼي چې
پرېږده چې تل دې په خندا سره خوري
د محبت په نوم نفرت چې کوي
پرېږده دا خلک دې چې لا سره خوري

***

دوی دي د غرونو لا د ښار خو نه دی
دوی لا د ژوند په مانا نه پوهېږي
دوی لا له ژبې کار د تورې اخلي
خدای که ټول ژوند په مینه و پوهېږي

***

منم د تورې او قلم ژبه ده
توره تېره قلم کې ساه نشته
دا پښتانه دي ګنهکار پخپله
که نه پښتو کې هيڅ ګناه نشته

۱۳۷۹/۵/۸

# پېژندګلوي

يو اشنا درپېژنمه
چې له خپله ځانه ورک دی
سختهٔ پر نه شي زغملای
په خوی کروړ په زړه نازک دی
***
هره ساه يې مينه مينه
ژوند يې مينه کې اغږلی
چا له مينې دی پوښتلی
زړه يې لاسو کې نيولی
***
نه په ژوند نه يې په خوند دی
د ښکلا بس په يو شرنګ دی
مينه مينه مينه غواړي
له بې مينې ژونده تنګ دی
کمزوري يې بله نشته
بس يو دا چې خالي لاس دی

کوم قوت چې ځان کې وینې
هغه مینه او احساس دی

***

د جانان په تصور کې
کړي د مینې ماڼۍ جوړه
غلی غلی ځانته ژاړي
شي او به له سینې کروړه

***

ملګري او مینه پالي
ورته ګرانه یارانه ده
چې کوم یار خوشاله وینې
وایي مینه همدغه ده

***

پرون وسو نن سوځېږي
د ده برخه سوځېده دي
ازادي ازادي وایي
خو لاسونه یې په خوله دي

***

د چا او ښکې راشي غم نه

ځانته ګوښې بې وسۍ نه
د ده سترګې شې را ۀ کې
اشنا ۀ بړې خوشالۍ نه

***

چې دا خپل زړګی تسل کړي
کله کله توري نغاړي
د شعر پېغله کړي راخپله
مينه مينه ورنه غواړي

***

بدر ژر د پيژندو دی
نه غرېږي نه د کار دی
طبيعت کې نازک رنجه
زبېړ په رنګ په وجود خوار دی
۱۳۸۰/۱۱/۳

# مزل مزل کې اوښکې

همدا دعا کوم، چـــې خـدا یه ډېره زنده ګي
راکـــړي پـــه زړه دا ســې یـوه وېره زنده ګي
ماشوم زړه مې ګرم نه دی دا چې نه اخلي زور
وهمـــونو نه وه ډکـــه زمـــا تېـــره زنده ګي
نه شاته بېرته تلای شي اونه مخته کومه لاره
یوځای کې سړی دا سې کړي راګېره زنده ګي
چـــې تا ګورمه کله دا خپل ځان شي راته یاد
چې ته نه یـــې جانانـــه ده مې هېره زنده ګي

مزل مزل کې اوښکې نوره هیڅ هم نه ده بدره
چـــې کلـــه یادومـــه خپله تېـــره زنده ګي
۱۳۸۱

وېره

د ماشومتوب هغسې
يوازيتوب
او شپې نه
کرکه لرم
يوازيتوب
او
شپه ده
چې زړه کې
وېره
کړي.
۱۳۸۱/۱۲/۱ شپه

ګران اسدالله غضنفر ته

# مینه

ستـــړی د دې ژونـد لـــه هـــره چـاره یم
یار مـــې شته عجیبـــه ده بې یـاره یم
بیـا بیـا چـې دا ستـــا لمنـه نیسمـــه
عشقـه تـا ایستـلـی لـه بـل کـاره یم
ښکلـــی یو تـــړون مـــې د ی ولـــس سره
دې مینــه کـې لـرې لـه سـرکـــاره یم
کار د زړه کې پام چې مې ونه پوښتئ
دې مجبـوری ویستـــی له اختیاره یم
لو یه ده د خـــــدای دنیا خو زه په کې
بــــې کلـــــــی بې کوره او بې ښاره یم

ډېر به وایي ډېر بـــــدره مئیـن نه دی
زه خـــــو هـم روان پر دغـــــه لاره یم
۱۳۸۲/۲/۳۰

# د مینې حق

منم چې ما سره دې نه رغېږي
خو دا ته نه یې
راته یې ګرانه ډېره
د رسره مینه لرم
او زړه مې غواړي هر نظر ته دا ستا
جانه لوګی لوګی شم
د رځنې وګرځمه
خو دا یوه خبره
زما له زغمه وتې
خو دا یوه خبره
د رسره نه منمه
خو دا یو حق د رلره نه د رکوم
چې راته وایې هر وخت
ما سره مینه مه کړه
ما سره مینه مه کړه
۱۳۸۴.۲.۳

*په کابل ښارکې د وربې د میاشتې د 14 نېټې د چاودنې او د بې ګناه ولس د شهادت په ویر کې*

# د کابل غم

زمـــوږه زړونـــه دي چـــې چـــوي د غـــمونو سر ته
ربـــه یو داســـې زړه دې رانه کړ چې غم پکې چوي
پـــر مـــا د مینـــې او ښکلا پیرزو د هیچا نه شتـــه
کابل چې ښکلی شي لږ ساه واخلي بیا بم پکې چوي

۱۳۸۱/۲/۱۴

## ښاپیرۍ

ولې حیرانېږې، چې درګورم
بسم الله وایم
تا مګر دا نه وې:
ښاپیرۍ یمه؟

۱۳۸۱/۵/۱۸

# تږی ګریوان

ښه مې ګورې، ډېر ارمانه ستړی یم
مه مې لټوه جانانه ستړی یم
نه مې شته سکون، قرار مې نشته دی
ډېر له دې مکان زمانه ستړی یم
څه که سره لمبه رالره ځمکه شوه
ستا د لاسه هم اسمانه ستړی یم
وچې مې چینې د سترګو نه ګوري
تږی، له دې خپل ګریوانه ستړی یم

دومره بدره ستړی له چا نه یمه
څومره چې له خپله ځانه ستړی یم

۱۳۸۷/۶/۱۸

# د لېونتوب مبارکي

ژړا زما بـه پـه مـزار کـې کوې
ډېوې به بلې هر يو وار کې کوې

هغـه زمـا د زړه لـه واکـه نه دی
ته چې د سترګو يو ګوزار کې کوې

عشقه ته هم زما د زړه په خبر يې
دا بې واري چې ته په وار کې کوې

پټ په کې ښکاري دې اقرار په مينه
کومه خبره، چې انکار کې کوې

ښخه په دې کې دې بس نه يمه زه
ته، چې خبره د زړه کار کې کوې
هغه خبـــره دې رښتيا ښکارېږي
پټه يې هر چا نه، چې ډار کې کوې

وا مبارک دې لېونتوب شه بد ره
خبرې ځان سره په لار کې کوي
۱۲/۹/۱۳۶۹

# د باران انځور

**ما خپل قلم**
**اشنا**
**له وریځو ډک کړ**
**تا د باران رانه**
**انځور غوښتی و**
**۱۳۸۷/۳/۳**

# ژوند

اوښکې مې په سترګو کې د ننه بړي ژوند
دا خو ستا له مخه مې خوښېږي ژوند

هره لاره ستا منزل ته رسي خو
لار په لاره ما سره سوځېږي ژوند

خومره، چې ترخه شي لا خوښېږي مې
چا ويل، چې نه به لا خوږېږي ژوند

راشه يوه خبره مې په زړه کې ده
راشه، چې خبره پاتې کېږي ژوند

يار شته دی خو زړه کې چې دا هم نه وي
ځای په ځای ولاړ دی که تېرېږي ژوند

زړه ته بدر کم دی خو چې راشې ته
دا لېوني خوښ دی، چې د برېږي ژوند
۱۳۸۸.۵.۱۴

# زما زړه

پېژنم یـــې ښــه جانانه ما ته معلومېږي، زړه
وایې خلـه نور ستا دې وي له تا سره جوړېږي زړه
دا منـــــم زمــــا دی خو له ما سره رغېږي نه
عشـــقه دا خو ته یې چې په ژبه دې پوهېږي زړه
تا پســــــې اوبه اوبه، اوبـــه شولو که ګوري یې
دا دی اوښکې اوښکې مې له سترګو نه تو یېږي زړه
ها چې ماشــــــومان وو لا او لاس نیولي ګرځېدو
پوه به شوم، چې هر نظر سترګې ستر کېږي زړه

بدره ښــــــــــه یې پېژنم یو عمر مو ژوند کړی
تېر به شــــــي له ما نه خو له عشقه نه تېرېږي زړه
۵، ۲، ۱۳۸۸
د شپې لس بجې، کور

# ظلم

په دې زه نه پوهېږم
دا ظلم ولې کوي
دغسې ولې وايي
چې زه يوازې يمه
خير !
ورته به څه ووايم
هغه خبره نه ده
ښايي ما نه پېژني
ښايي هغې زړګيه
چا سره سترګې جنګولې نه وي
او دا ورته ښکاري نه هيڅ
چې زه يوازې نه يم
زما په زړه
زما په ذهن
او په خيال کې يوه دنګه اوسي
چې په هر دم او قدم

همیش وي مله راسره

راسره خاندي او خبرې کوي

له دې یادونو سره

ما ته مې ځان یوازې نه ښکارېږي

خو هغه ظلم کوي

او بس همدا

یوه خبره یې ده

چې زه یوازې یمه

خو زه یوازې نه یم

ما سره مینه مې ده

۱۳۸۸،۲،۱۸

# مینه

وروسته له شلو کلو
په خپلې کړې دعا
منې!
چې د پر یم پښېمانه ګلې
***
له چا نه ومې پوښتې
د پر مې نږدې وموندې
هغه شېبه په زړه مې نور وورېد
سترګو مې د هغو شېبو
رڼا رڼا په انځورونو شولې
***
هغه شېبه هم راته یاده شوله
چې تا د خپل حسن
غرور ته مخ کړ
او پر ما تندر پربوت
زړه مې ټوټې ټوټې شو
***

ما مې د خپل زړګي ټوټو ته ژړل
او د همدې اوښکو بهیر په شپو کې
ټوټې ټوټې زړګی مې
جانانه لپه شوله
هغسې لپه د ښېرا
چې نن پښېمانه یم پرې
۱۳۸۲/۸/۲۷
کندهار، نوی ښار

# ځوان زړه

عشقه ښه ګورې، پرهرونو نه، چې جوړ دی زړه مې
چې مېلمانه لري نو مه وايه، چې سوړ دی زړه مې
اوبه او به خو بس جانانه يو په تا پسې دی
کنه غمونو د دنيا ته خو کروړ دی زړه مې
ورته د ډار او د ډېوانو کيسې نه کومه
هسې نه ويې وهي وېره لا خو ووړ دی زړه مې
خلک دا وايي، چې اخر کې هر څه زړه ووهي
يو څوک خو ودې وايي ماته عشق نه موړ دی زړه مې

ږېره کې سپين و ښتته منم چې و ږولي يمه
خو بد ره دا منلی نه شمه چې زوړ دی زړه مې
۱۳۸۸/۲/۲۲

# نیمګړې شپې

راځــه که ګــورې يــې خوبوړې شپې دي
تيارو کــې نغښتې اشنا ستړې شپې دي
وې دې، راځــــــم او بيا له هغې شپې نه
خوب مې له سترګو ځنې وړې، شپې دي
زړه مــې دې سيوري ته چې غواړم هميش
عشقــه لــه غېږ مــې دې راوړې شپې دي
ارمــانــه ستـــا ســودا اخيستــى يمــه
زمــا د ژونــد د ډېــرې نيمــګړې شپې دي
منــم کــه سختــې دي خــوږې خو هم دي
د مينــې غېــږه کــې مــې کړې شپې دي
پــه انتظــار انتظــار بــدر دا ستــــــــا
پخپــــــــلو اوښکو رنې کړې شپې دي
۱۳۸۸/۹/۹

# مینه

منم، چې مختہ تر دې
ته، خوښېدې مې زیاته
راته وې ګرانه دِ پره
خو دا احساس مې کله کړی نه و
داسې مې هیڅکله ګڼلې نه وو
زړه مې د غسې درزېدلی نه و
کله یې هم داسې خبرې رانه نه وې غوښتې
***
پرون سهار کله همدا ، چې ته مې ولېدلې
د زړه درزا نه وایم
راته تر هر وخت او تر هر چا اشنا
ښکلې ښکاره شوې دِ پره
ما داسې ښکلې
کله لېدلې نه وې
ستا دا ښکلا جانانه
شوه زلزله مې په بې حسه زړه کې

دغسې تو له ورځ مابنامه پورې
زړه تخنولمه، له ما نه يې خبرې غوښتې

***

مابنام ناڅاپه غوندې ځير شومه، چې
بهر رڼا ده، هر څه سپين ښکاريږي
هسک ته، چې و مې کتل
سپوږمۍ د څوارلسو وه
ما د سپوږمۍ څېره کې ته ولېدې
زړه مې بيا وسکوندېلم
بيا يې خبرې غوښتې

***

خوب کې مې وليدل، چې
زه په رڼو اوبو کې ژوند کومه

***

سهار، چې پاڅېدلم
پوه نه شوم ولې يو دم
زړه کې له تا سره مې
احساس د مينې وکړ.
۱۳۸۸د ليندۍ ۱۳

# ستړګې، مینه او کرکه

تا چې له مینې، مینې وپوښتلم
او ما په ډېره مینه وویل درته
چې زه مین پخپلو سترګو یمه
له خپلو سترګو سره مینه لرم
خو ستا نمجنو سترګو
کرکه مې راوسته له خپلو سترګو
وې مې چې کاش کله مې سترګې نه وې

د چنګاښ شلمه ۱۳۸۸

*یادونه:*
*په ۱۳۷۷ هجري لمريز کې زما د منظومو کرښو یوه ټولګه د ننګيالي اسمعیل یون په زیار چاپ او خپره شوه، دلته له هغې ټولګې څو بېلګې بیا راوړم.*

## *د خپل پلار په ویر کې*

# ورک په ورکو کې

شپېبې شوې تېرې
کلونه تېر شول
خو مې په زړه لکه د نن ورېږي
په یاد یدو کې دې نن
په زړه مې غم راپرېوت
سترګو مې اوښکې وکړې
درپسې و مې ژړل
په زوره زوره هسې
چې چا په چا پسې ژړلې نه دي
***

هیلو اسرو واخیستم
چې دې مزار ته درشم
چې دې زیارت وکړمه
زه له کلونو وروسته
ځکه کلونه کېږي
چې ستا له مړینې وروسته
زه له خپل ځان او له جهانه ورک یم
یو داسې ورک چې ورک په ورکو کې یم
غواړم د سترګو اوښکې
دغه رانه
دغه ګلونه ستوري
دغه ځولۍ مې د غمونو خپله
ستا په مزار باندې راوغوړوم
سم دې له ځانه سره وژړوم
درته کیسې مې د دردونو د غمونو
تېرو هېرو وکړم
هغه کیسې چې ژړوي مې هر وخت
هغه کیسې چې ځوروي مې هر وخت
هغه کیسې چې راته تا یادوي

## هغه کیسې

هغه کیسې چې په کې ورک یمه زه
یو دا سې ورک چې ورک په ورکو کې یم

۱۳۷۰،۱۲،۲

# لاروركي لاروي

بېګاه خوب کې مې لیدل چې
یو لارورکی مسافر یم
نالیدلي لور ته خوځم
په مزل یم
د شپېبو په تېرېدو کې د یو ګڼ ځنګله و مخ ته
ځان مې مومم
په فکرونو کې ډوبېږم
هرې خوا ته
د سترګیا له ډک نظره
بس اوتر اوتره ګورم
لټومه یوه لاره
له ځنګل نه د وتلو
خو چې هرڅومره زه ګورم
لاره نه شته په ځنګل کې
له ځنګل نه د وتلو
***
له فکرونو ځنې وروسته

دغه هیله مې په زړه شي:
کاشکې یو تن دلته وای خو
چې پوښتلی مې وای دومره
له ځنګل نه د وتلو
کومه لاره چېرته شته ده
او که نه شته.
***
په همدې هیله کې ومه
چې یو څو تنه له لرې
راښکاره شول
سم چې ماته رانږدې شول
ترې مې وپوښتل په مینه:
چېرې د رومئ کوم پلو ځئ؟
لکه ما غوندې لار ورکي خو به نه یئ؟
یو تن ماته رانږدې شو
د سترګو له ډک زړګي یې راته ووې:
دا ځنګل زموږه کور دی
له مودو په کې اوسېږو
لارې ګورو د وتلو

د منزل پلو خوځېږو

***

ما چې وکتل دوی هم وو
لکه ما غوندې لار ورکي
زما هم ډېرې مودې شوې په کې تېرې
په لټون د یوې لارې د وتلو.
د مودو په تېرېدو کې
لکه ما غوندې لار ورکي
یو په بل پسې راتلل او زیاتېدل به
د ځنګل د ونو شمېر ته
ټول په یو مقصد روان وو
یوه لار مو لټوله
له ځنګل نه د وتلو
خو پیدا مو چېرې نه کړه
هسې لاره چې ځنګل نه په وتو شو
حوصلې مو شولې تنګې
جام د صبر مو نسکور شو
یوه پرېکړه مو په ګډه سره وکړه
د ځنګل د سوځولو

اور مو پورې په ځنګل کړ
ټول ځنګل لمبه لمبه ایرې ایرې شو
او لوګي ترینه ختلو
په جامو کې ځاییدم نه له خوښۍ نه
د ځنګل په سوځولو
تماشه کې د ځنګل د سوځېدو وم
چې په ما له کومې خوا نه
سرې لمبې شولې راتاوې
یوه کړیکه مې له خولې نه رابهر شوه
او راویښ شو مه له خوبه
په فکرونو کې مې ډوب شوم
په لار ورکو کې ځان ورک راته ښکاره شو
***
شېبه پس ته چې ویده شوم
یو سپین ږېرې
چې یې هرڅه هرڅه سپین وو
له وېښتو نه تر نوکانو
خدای خبر له کومه راغی
همهغه ایرې ځنګل کې

چې لوګي تر ښنه ختلو
زموږ خوا ته را نږدې شو
له يو سوړ اسويلي وروسته يې دا ووې
دا مو څه کړي دي خوارو؟
زه نږدې شوم ورته ورو ورو مې دا ووې
له ځنګل نه د وتلو
مجبوري نه اور مو پورې په ځنګل کړ
د منزل په لورې يون ته
بيا يې دا پوښتنه وکړه:
چېرې درومئ کوم پلو ځئ؟
موږ په ګډه ورته ووې:
د ښکلا او محبت ښکلې دنيا ته
بوډا دې باندې، چې پوه شو
له ډېر قهر او غوسې يې
موږ ته ووې:
همدغه ستاسو منزل و
همدغه ستاسو دنيا وه
چې مو وسوه
چې ايرې شوه

چې ښکلا يې نوره نشته.

***

چې سهار ويښ شوم له خوبه
په فکرونو کې بيا ډوب شوم
ساده ګي پورې د ځان او د لار ورکو په خندا شوم
يو افسوس مې په خپل ځان او په لار ورکو باندې وکړ
او بيا داسې د اميد له ډک زړګي نه
په دې خواست شومه له خدايه:
چې لار ورکي دې هوښيار کړي
هوښيارۍ سره دې سم په سمه لار کړي
ګنې داسې که ونه شي
نو د دې ځمکې پر مخ به
نور لار ورکي خلک
ټول له ځمکه سره لمبه کړي
ټوله خاوره به ايره کړي
او منزل د خپل ارمان به کړي
په خپلو لاسو خاورې
۱۳۷۱/۱/۲

# زموږ کلی

زموږ کلی
دا د دنګو غرونو شاته
که دې زړه وي
چې ته راشې
د زړګي پردې دې خلاصې کړه په ځير شه
او بيا وګوره په مينه:
يوه سره د وينو ليکه
غځېدلې ده له غرونو
چې تر کلي پورې رسي
۱۳۷۳/۱/۲۲

# يأس

ښه مې په یاد دي اشنا
چې به پخوا
کله زموږ کلي کې
د ټوپک ډزې وشوې
د رېبيمه ورځ
د یو ماشوم هلک په غوږ کې مو
د کلي ملا
ډېرې خوښۍ نه اذانونه کول
***
خو اوس زموږه همهغه کلي کې
د خنداګانو او خوښیو کلی
د ټوپک ډزې کېږي
او په همهغه ورځې
زموږ د کلي ملا
آن له چرګبانګه تر ماښامه پورې
د سر په سر

پهوينو سرو جنازو
چې هديرې ته راځي
کوي لمونځونه
ژاړي

۱۳۷۳/۱/۲۳

# یو ارمان

چــې د زخمونو په دردونو اوړو
مــــوږه د ښکلو په کبرونو اوړو
مینه زمــوږه د عـــــمـرونو سفر
په بــلا زلفـو بـــلا غـرونو اوړو
لا چـــــې حیا یې د کتو وساتو
لا یــې په سپــورو نظرونو اوړو
زمــــوږه لاره پــه اغــزو وتـلې
دا یــو ارمان ! چې په ګلونو اوړو
قـــــدم چې اخلو ثوابونو پسې
قـــــدم قـدم په عـذابـونـو اوړو

بـدره چې لارې رانه ورکې دي خو
پــه سپین سهار په مابنامونو اوړو
۱۳۷۳/۲/۱

# د شوګیرونو لښکر

ژوند مــې یو سیند هسې څپې څپې تېرېږي او ځي
ګـــــورم ساحل ســــره ټکرې خوري ماتېږي او ځي
اوس دې یــــادونــه هــم جانانه ستا خویونه کوي
راغلــي نــه وي لا چــې بېــرته بیا ستنېږي او ځي
د شــوګیــرونــو د لښــکر د نــظــر تاب نــه لري
خوب مې تر سترګو پورې راشي خو وېرېږي او ځي
چې کــومې ښکلې مې زړه واخیستلو اور یې کړلو
نن یــې له تــاوه ځنــې خپله څنګ ته کېږي او ځي

بــدره چــې وایــم د اشنا مــخ کې نور نه وایم څه
هــره خبــره چــې کــومه خپه کېـــــــږي او ځي
۱۳۷۵/۳/۱۲

# د غشو تنده

داسې چې ډېر ډېر په ما ګران دی زړه مې
زما خو نــــه دی د جـانـان دی زړه مې
تـورې تېرې پـــرې هـر نظر پـرېـوځـي
د ویـنـو کـــور افـغـانستان دی زړه مې
ستـــا د نـظــر د بـړبـوکـو هـنـداره
د ښــــایستـونو بیـابـان دی زړه مې
راشــــه د غشـو تنـده مـاتـه کړه پرې
ځپـــــې ځپـې رود روان دی زړه مې
دی د غـــمـونـو حسـرتـونو جهـان
غریـــب یې مه ګڼه لوی خان دی زړه مې
بـــدره چې وینې وینې خاندي په کې
پـه پـرهـرونـو چـراغـــان دی زړه مې
۱۳۷۵/۵/۱۸

# حلقې حلقې سترګې

ستا د وعــــدې لــــه انتظـــاره سره
لارې دې څـــارم لــــه ريبـــاره سره
راشه چې سترګو کې مې ګل شوې اشنا
سينــــه مــــو ښــــم له هــره خاره سره
حلقې حلقـــې مې انتظار کړې سترګې
هـــــــــــره شېبه مې ده له داره سره
داســـې بـــې واره دې راوکتــــلې
چـــــې شوم بې واره سم له واره سره
مينــــــــــې دې داسې لېونى کړمه زه
چې هيــــــڅ مې نه لګي هوښياره سره

بدره اشنــــــا وروستي ديدن کې ووې
مينــــــه څـــوک نه کــوي له خواره سره
١٣٧٥/٨/٢

# د ژړا په تال کې

## ۱۳۷۵کب

که تېروم دانه وانه زنده ګي
جوړوم خيال کې شاهانه زنده ګي

مرګه له تا سره د مينې په نوم
ده يو ښکلې بهانه زنده ګي

په ګريوانه لکه د اوښکو لړۍ
تېرېږي ځي دانه وانه زنده ګي

خوښه دا ستا چې څنګه ژوند خوښوې
زه خوښوم عاشقانه زنده ګي

غله نظرونه ورته داسې اوړي
لکه وي ستره خزانه زنده ګي

د يار له سترګو نه چې ګوري لارې
غواړمه داسې جانانه زنده ګي

بدره چې تال کې د ژړا يې وايم
ده د غمونو ترانه زنده ګي

# توره شپه

تیــاري دي له سهــاره تر سهــاره توره شپه ده
په مــورږه بدنصـــیبو دوامــداره توره شپه ده
بنګړو ته دې شرنګ ورکړه چې دې و پېژنم یاره
ده لار له لارې ورکـه لار پـــه لاره تــوره شپه ده
بلا د زلفـو اخلــو چــــې په لاره ځـــــو د زلفو
د عشـــق د لیونیــو خــو تر داره تــوره شپه ده
نه جام نه صراحي شته او نه شور ځــه د بنګړیو
په مورږه مینه خوارو داسې خواره تــوره شپه ده

دیدن ارمان چې راشي بــدره دا سنـــدره بـــولو
چې خوارې سترګې ګرځو لا اغیاره توره شپه ده
۱۳۷۵/۱۲/۱۸

# مینه

خال دې له سجدې او له کعبې وایي
سترګې دې له جام او میکدې وایي
هغه شم اشنا او که په دغه شم
هر یوه له خپلې عقیدې وایي
نه منم له شیخ سره یې نه منم
شپه د پسرلي کې له توبې وایي
بیایي مې ملا کوم لورته بیایي مې
ماته دې جانانه له کوڅې وایي

بد ره لیونو سره چې خوښ یمه
مینه یې چې غواړي له هغې وایي
۱۳۷۲/۲/۲

# د خندا تصویر

اشنـــا تــه خاندمــه دنیا تــه خـاندم
د غــریب خــوله یمـــه هرچا ته خاندم
د اوښکو اوښکو په هندارو کې مې
موسکی تصویر ستا د خندا ته خاندم
ستا مجبـوری، نـه عشقه نه پـــوهېږم
چـې چـاتــه ژاړمــه او چـاتــه خــاندم
پوهېږې ستا وعدې چې څنګـه ژاړم
کـلـه بیګـاه کـلـه سبـا تـــه خـانـدم

جـــانـانــه بـدر چــې میــن یـم پـر تـا
تـا تـه بـه ژاړمـه او تـا تـه خـانـدم
۱۳۷۲/۱۱/۲۳

# د زړه هنداره

د وینو ستوری له مداره نیسم
د زړګي درد مې له پرهاره نیسم
بازار د ښکلو کې چې څه کومه
دې غلام زړه ته مې باداره نیسم
قاتل نظر انځوروم د اشنا
ځکه د زړه ورته هنداره نیسم
زه یمه داسې لیونی ملګرو
اوښکه مې سترګو کې ایساره نیسم

نن مې نظر نظر کې اوړي بدره
چې هر نظر ، نظر کې لاره نیسم
۱۳۷۲/۱۱/۴

# څلوريزې

نظـر، چــې وا ړوې خو ډېر خــلک دي
د ميـنې ور چې دي په شمېر خلک دي
د هر چا هغه وخـت کې پام شي ورته
چې افغـــانان له سره تېر خـلک دي

***

وايي غلط شوم او بيا بيا ورګوري
يو څوک د يار د مخ خالونه شماري
له خپله ځانه پسې ورک چې ښکاري
زړه مې دا ستــا د ياد پلونه شماري

***

چې بې سته د جنت په لوري نه ځــي
پښتانـه خو د پښتو د پت په پله ځي
نوري لارې که هم وتــې دي مـنزل ته
زه په هغه لاره ځمه چې مې زړه ځي

***

دا وختــونه که نغمې نغمــې د نور شي
نصيبونــو کــې زموږه سور تنور شـــي

چې بد نامه وي د مينې، ليوني وي
بد ره کلي کې زموږ هغه چور شي

***

چې له سترګو نه په زړونو پريوتلي
ليوني دا سې مقام ته رسېدلي
ښکلو راشئ د غرور سرونه تيټ کړئ
لوی لوی غرونه مو ليدلي نړېدلي

***

بيا ګردجنې، چې کوڅې مو د زړګو دي
ګودرونه د نظر په وچېدو دي
په چمن کې د ګل سترګې شوې نمجنې
چې اغزنې فضا ګانې د سپرلو دي

***

د ليونتوب ټولې کانې کومه
تا ته دعا ځان ته ښېرې کومه
مينې حيرانې سترګې څه را ګورې
څه چې کومه ستا د ښې کومه

***

څه شو جانانه که ارزان خرڅېږي
مينه کې زړونه په تاوان خرڅېږي
چې يې خندل هوسپرستو پورې

هغــه له مينې نه قربان خرڅېږي

***

زړه مــې لوګو او اسويلو ونيوه
ستـــا د خندا د اور لمبو ونيوه
د خپل ارمان په وينو سور ليونی
هغــه دی مري بدر سلګو ونيوه

***

سترګو نــه په غم کې اوښکې تويې شي
راشــــي زما اوښکې خوشالۍ کې هم
تاب که مې دې وختـــه د قيد نشته هم
تنګ مــې شي زړګی ستا ازادۍ کې هم

***

د عشق انځور د سترګو جنګ کې نغښتی
زمــــوږه ژوند د وينــــو رنګ کې نغښتی
دا سنـــد ريــــــز د ګــود رونــو ښايســت
د منګو شــور د بنګړو شرنګ کې نغښتی

***

لا زما پــه ژبه چې شپيلۍ شپيلۍ غزل شين دی
غره کــې د زړګي زما د زلفو دې ځنګل شين دی
دا شاړې کوځې لارې چې ماته شاړې نه ښکاري
لا خـــو هر قدم کې يې زما د اشنا پل شين دی

***

پــه خپــل وطــن وطن وطن ژاړم
د یــار ســالــو د ځــان کفــن ژاړم
د پسرلي کاروان په لاره لوټ شو
ګلـــــــــونه ژاړمه ګلشن ژاړم

***

په لګېدو چې وې ډیوې مړې شوې
د انتظار غېږه کې شپې مــړې شوې
خوند په سبا کې د سبــا چې نه شته
د ژوند بــاور هغه وعدې مړې شوې

۱۳۷۴

***

وعدې د نن چې په سبا تېروي
هره خبـــــــره په خندا تېروي
مینه کې بام ته د کبرونو خېږي
هـــــــــره روا په نا روا تېروي

***

چــــې کوښې د یار د مکر خندا واخلي
لیـــونــــــي به لیــوني په کاڼو ولي
لا چې سر په سر رندان جامونه تش کړي
لا پــه ســر ســر بــه ساقي په کاڼو ولي

***

دا وختــونه که نغمې نغمې د نور شي
نصيبـــونو کې زموږه سور تنـــور شي
چـــې بــد نامـــه وي د مينې ليوني وي
بــدره کلــي کــې زموږ ه هغه چور شي

***

د اور پــه څنــو ځنګېدلي ځواني
سوځوو خپــله سوځېدلي ځواني
ست تــه کتلي مو د سترګو د جام
ګرځوو ځکـــه جل وهلې ځواني

***

څه مې پوښتې له اغاز او له انجام
چې مــې ګــورې همــد غــه يمه تمام
سراســر زه لېونى يم ليونتوب يم
سرا ســر مې نه سکون شته نه ارام

***

واړوه کاتـــــه دې ښه ترخه اشنا
هغه کوه غواړي چې دې زړه اشنا
بدر ته دې هــو چېــرې ونــه کړله
ودې سبــځه ټول عمــر په نه اشنا

***

موږه چې ګرځو داسې خوارې سترګې
د ساقي خپلې دي خمارې سترګې
زموږ په حق دا فيصله شوېده
ملګرو ګرځو چې لا چارې سترګې

***

عشقه ستا په غېږه کې د خوب دعا
شوې ده زما د ليونتوب دعا
کوم خلک چې ګورې ليوني ګرځي
شوې د هغو د مينتوب دعا

***

کله په جام او په مينا ماتېږي
زما چې تنده ياد کې ستا ماتېږي
د ليونو زور که دې ولېد لو
رقيبه سر دې خامخا ماتېږي

***

د ژوند چې ټولې ورځې شپې وژاړم
بې وفا څومره دې وعدې وژاړم
چې دې خواږه يادونه وخندوم
زه به غمونه دې په دې وژاړم

***

عشقه چې ستا په نوم مجبور نه دي

دا لیـونـي زړونـه ناسـور ښـه دي
چـې د رښتیا په مینه دار ته درومي
بدره یـاران لکـه منصـور ښـه دي

***

عمـري قیـدي یـم د ژړا زه ځنـګه وخانـد مه
چې خوله مـې نه شته د خندا زه څنګه وخاندمه
دا خـو چـې وایې په بې نمو سترګو مه راګوره
بـدر چـې ستـا غوارم رضا زه ځنګه وخاندمه

***

شک د وفا شته دی که هم ښکلو کې
مـوږه په یقیـن یې د وعـدې ورځو
دا چـې هـره لاره پـه منـزل وځـي
خو ښـه مـو په هغه که په دې ورځو

***

مینې چې نوم دې ښه په شور اخلي
د غســـې زړونـه به خود اور اخلي
جانان راګوري خو چې سم نه ګوري
بـــدره زړګی به مې څه زور اخلي

***

دا چې پوه شوم په بیګانه او سبا نه
ما لــــه عشقه ژړا زده کړه خندا نه

بـــدره داسې جنتي ګناهکار نه شته
چـــې دې ټول عمر ثواب کړي ګناه نه

***

مینـــــې ته هر قدم مجبور زړګی
په دار زنګېږي مې منصور زړګی
ستـــا د ستم دا مهربانې سترګې
چـا ته مـې وښیـم ناسـور زړګی

***

سینــــدونه ژاړمه د جال په لمن
اورونــــــه ګرځوم د خیال په لمن
بخت چې د خپلې مینې ژاړم بدره
د خیر ګراني شوله د سوال په لمن

***

د دنیـــا که د حالاتو هر څه تول وي
د ملنګو یو امید وي بل کچکول وي
رقیـــبان له بدره داسې تاو را تاو دي
لیــــوني ځنې واړه لکه راټول وي

***

لا غوســـه غوسه شه قهرېدلې راته وګوره
ټکنـــــده غرمه شه قهرېدلې راته وګوره
لامې منصوري خماري تنده اورنۍ چې شي

لا د دار نشـــــــه شه قهرېدلې راته وګوره

***

جانانــه ستا نه به همداسې لور په لور ګرځم
چې ملنګي مې غوره کړې کور په کور ګرځم
پـــه پر هرونو چې د خوږ زړه ارمانونه وځي
څـــه خو به وي، چې زه په تمه د ټکور ګرځم

***

چې خوښېږې مې خونکارې سترګې ستا
کـــوي زړه تـــه زمـــا لارې ستـــرګې ستا
مـــا پـــه خوب کې ته لیدلې چې ویل دې
لیدای نه شـــم بـــدره خوارې سترګې ستا
۱۳۸۸/۱۰/۲۱

***

لا به خنـــدومـــه دې لا چـــې ژړېـــــدای شمه
ستا له تصور ســـــره تـــا تـــــه رسیدای شمه
جـــام د دنیا بـــده زوروره بـــې خـــــودې لرې
عشق راکړی لاس دی که نه کله ودریدای شمه
۱۳۸۷/۳/۲۷

***

نظـــر چې واړوم په هر نظر کـــې تاووینم
یـاره دعا کوم همدا ، چې دې بیا بیا ووینم

لپه کومه چې په مینه خپل لاسونه رب ته
تـا آئینـه کې مې د لپـې په خندا وو ینم
۲۷/۱۰/۱۳۸۲
د کلید مجلې دفتر

# بیتونه

د دنیا کـه د حالاتــو هر څه تول وي
د ملنګو یو امید وي بل کچکول وي

***

بد ره زما چــې له خپل کلي سره نه رغیږي
هر ګنهکار په کــې په نوم د لیوني پېژني

***

چې د ښکلو د خوږو خبرو مره دي
لکه بدر لېــوني به تـل دوکه شي

***

په زړه ته مې ستا د راتلو زېری وشو
چا راتــه وې سترګو دې بار نیولی

***

ياد دې د مينــې چې وي مل را سره
خود به دې غم وي په هر پل را سره

***

ښـــــه ده ساته ته د خبـرو روژه
دي اختـرونه دي وياندې سترګې
۱۰/۵/۱۳۸۲

***

عشقـه ! خدای دې زړه نه زما کم مه کړه
تـه يې چې دا ژونـد پـه دعـا د ېر غـوارم
کندهار، نوی ښار
۱۳۸۲

***

زړګيـــه ظلـم يــې ګڼې، کـه انتهــا د مينې؟
چې خپل اشنا د رپسې توره په خندا ګرځوي
۱۳۸۷

***

یو ښار کې د چا سر ته، بل ښهو کې زړونه پېېي

دا یو قتل ګناه ده او دا بل قتل ثواب دی

***1380.3.7***

***

تمــــامه شپه مې للمه لار د انتظار څارله

تمامه شپه ډېوې وې بلې او باران ورېده